# اسلامی انقلاب



مؤلف
میاں گل صاحبزادہ

راشه وګوره پښتو فارسي اشعار | شه اوچت علمي ديني دوخت په کار
فلسي عنت اميز خبرت الګړه | وپښتونکي مضامين نوي بهار
راشه ګډ شه دې ګلزار د معرفت کې | پکښې وينه انوار د کردګار
داپه لوم د اسلامي انقلاب جوړ شو | سم خنجر دی د دشمنانو ته خونکار

وبه ګوري د ردونکي داستانونه
پښخواني د خداي مينو دار مدار

# اسلامي انقلاب



دا بلکل د فلسفو پنکلي نچوړ دي
درته وبه ښيي هر رنګه بازار

ورنه څېر شه بنه ژور مطالعه ته | درته وبه ښيي د لوي اسکمار
دشمنان به دې په ګوته ګوته شي | درته وبه ښيي هر رنګه غدار
له دې هسې دراته خوبه به دې ويښ کړي | وبه ګوري د دښمن دام او شور ودار
مياګل صاحبزاده سوي څېګر شو | د دشمن په هغه کار رستاپيدي کار

د ديوان لمړي ټوک

## مؤلف مياګل صاحبزاده

# براهین مؤمن

بسم الله الرحمن الرحیم

د موند لو ځای

یونیورسٹی بک ایجنسی خیبر بازار پشاور

بیعه : ۲۵ روپے

# فهرست مضامین کتاب براهین مؤمن

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# مقدمه

اَلْحَمْدُ لِلّٰہِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ وَالصَّلٰوۃُ وَالسَّلَامُ عَلٰی سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ سَیِّدِ الْمُجَاھِدِیْنَ وَاِمَامِ الْمُتَّقِیْنَ وَقَائِدِ الْغُرِّ الْمُحَجَّلِیْنَ وَعَلٰی آلِہٖ وَصَحْبِہٖ وَمَنْ جَاھَدَ فِیْ سَبِیْلِ شَرِیْعَتِہٖ اِلٰی یَوْمِ الدِّیْنِ اما بعد

دین مبین اسلام که برای نجات بشریت از گودال هلاکت وجهالت، صراط مستقیم وخط مشی مبین بوده ملاک ومعیار سبیل حق ونظام عالی تکمل است که از همه جوانب سعادت و ارتقاء چنگ زنندگان راستین این برنامه مبین را به سر منزل گاه، معرفت مظاهر صفات جمال وجلال ذات اقدس واجب الوجود تضمین می نمایند سیرهای لاهوتی وملکوتی و بلاخره راه پیمائی های جبروتی وناسوتی را نصب گردیده مظهر صفات جمالی میگردند این نعمت عزاء شریعت را ذات اقدس الوهیت بر مخلوق شریف انسانی ارزانی نموده که ایشان تحمل تکلیف بار گران خلافتش را بکمال شهامت وایمانداری باعشق سرشار پروانه وار برداشتند ومصدر تجمل (فمنهم من قضی نحبه) قرار گرفتند این قافله سالاران کاروان سبیل حق علاوتاً بشر را از گودال بدبختی وضلالت نجات داده به سرمنزل نجاح وفلاح ثوق دادند مصداق آیه متبرکه ولتکن منکم امة یدعون الی الخیر گردیدند.

اما آنکه از اغوائی شیاطین در گرداب غفلت فرورفته طعمه دیوی طاغوت گردیدند (صم بکم عمی) در تاریکی های بربریت وغلامی دست وپا میزنند مانند امعه های بی بندوبار در راه های هدایت وضلالت در حیرت بوده، همچون وحشت زده غرق تلاطم های

امواج طوفان به هر چیز و هر جا امید برده پابوسی هر نوعه خس و خاشاک نابکار را در عالم مجبوری دنبال می نمائیند و به امید بالا رفتن به قهقرا می روند
عدهٔ خود فروخته گان حلقه بگوش طاغوت ضمیر انسانی را از دست داده مانند درندهٔ وحشی خون آشام بار می آیند و بدترین دیوی لجام گسیخته مانند و بای مهلک ساری تبارز می کنند. چنانچه عناصر مرتد افغانستان از مسیر شرافت بدر شده کلمه اشراف را مورد تمسخر قرار می دادند. و پدران و مادران خود را به سر نیزه جابرانه استعمار به خون کشیده برای راضی ساختن باداران خود بان جشن می گرفتند و کف می زدند. اینک این رساله را غرض آگاهی کافی برادران تقدیم داشته ما تا باشد که خوانندهٔ محترم دربارهٔ این داعی دعائی خیر نمائیند با اختر

والسلام

داعی الی الخیر **میاگل صاحبزاده** (مرسپی لوگرد باشندهٔ زرمت پکتیا افغانستان)

# به اغیار کی شدی مزدور مازی

به اسلام مبین کابل درایید
به نور تمایسناکش باز آیید
زگرداب چنین حالت برائی
اگر الحق به ایمانت درائی۔
که رستی بار دیگر از فلاکت
شوی شاهین بپروازی به شوکت
نهی پائی به افلاک و به گردون
رسی بر عرش در گلزار بی چون
بیا بالا پرو از غم رها شو
چرا افتادهٔ باری بپا شو
چرا محتاج اغیاری همیشه
به خمر دیگران باشید نیشه
چرا فقر و ذلت بر تو نوشتند
ز تو افتاده گان بالا نشستند
به اغیار نگه کارش کجا شد
چرا مؤمن به این ها مبتلا شد
کجا شد رسم دیرینه کجا شد
به غفلت این همه بر ما روا شد
یدیدی انکه از مران گرفتند
به فهم و نور آن بالا برفتند

به ظلمت ها دیوروپ ا در قهقرا بود
زمانیکه ظهورِ مصطفیٰ بود
به مردم پاپ اسقف ها کشش ها
خرافاتِ روا میداشت انها
به بیسه می فروختند نمره ها را
ز جنت هر جریب از قاره ها را
تجاران جنت بودند ایشان
به هر کس واسطه می شد کشیشان
چو مظلومِ کسی دل ریش میشد
به دعوا عرض گویان پیش می شد
به یکجا با درنده غول حیوان
همیکردش به یک خانه غریبان
بفکر انکه گر عاصی بود آن
خورندش شیر وحشی غول درآن
ولی گر نیست عاصی پاک هستند
ازین حیوان نجات حتمی بیابند
وگر در قبر مرده مرد میشد
زنش هم بهر خدمت گرد میشد
به شویش زنده زیر خاک می کرد
غریبِ گر گریبان چاک می کرد
به اسلام فتح شد شام و فلسطین
مدبرانه کنارش ترکِ پیشین

فتوحات تا به قفقاز پیش آمد
چو بیزانتین بسی دل ریش آمد
دو طاغوت بلندگوی زمانه
ز پا افتاد این غول ترانه
به شمشیر مجاهد فتح گردید
غبار لاخدایان قطع گردید
یکی طاغوت فارس بود یزدگورد
دیگر بیزانت وتین زمانه نمرود
دو صد سال بود در جنگ صلیبی
روپا با مسلمانان شامی
درین جنگ ها اسیر می شد ازان ها
اوروپائی بدست مؤمنان ها
به ایشان می نمود دارالخلافت
ز کرداری مسلمان با فراست
بسی از نور قران می گرفتند
به اگاهی کامل باز رفتند
همین بود آمد و شد انقلابی
اروپا را دیگرگون کرد طلابی
مثال آورم گوستا لبون را
که خود قربان شد زار و زبون را
ازین جا فهم قرآن را بیاموخت
درو نس نور ایمان را بیاموخت

به پاپ و اسقفان رفتند آنجا
خریدند کل جهنم را ز آنها
بسازد تا به بطلانش دلیل
شوند در پیش هر کلبه ذلیل
چو پاپان دید از دوزخ خریدار
به فکرش امد این بی فهم مالدار
به ناچیزی بدادند دوزخانرا
گرفت گوستالبون اسناد آنرا
بیامد در فرانسه داد میزد
به مردم هر دمی فریاد می زد
که آی مردم جهنم را خریدم
شما را لازم جنت بدیدم
از این پس مرد جنت خرمه باشید
به یوع همچونان نرخرمه باشید
مرو بر پای بوس همچو احمق
مده بر باد خود را حق بگو حق
ببین تحریک قرآن بود یا نه
که این مردم شدند بر بام خانه
ز گرداب جهالت باز جستند
به افلاک و قمر بالا برفتند
به قرآن این بس است از افتخاری
که از نورش قمر شد سرفخاری

بیا بشنو بحق دینی سماوی
چه خوشش نامش بود افتاب ثانی

شکرافشان شود کام و دهانم
که اسلام شکرافشان خوانم

بیا بشنو ز قرآن گر بصیری
علوم کل جهان گر فهم و گیری

بیا گر خواهی باشی مرد مومن
به فوز هر دو باشد از تو ضامن

بحق احق شوی بر ارتقائی
بیابی نام و عنوان و بقائی

ز نور پاک قرآن شد همه رشد
چرا آئی بی خرد بر تو نمی رشد

حقیقت این بود پس دور ماندی
به اغیاری شدی مزدور ماندی

به صدها همچو دنیا و جهانست
به قرآن مقدس این و آنست

بیا برخیز پرتو یار جانست
بجز نورش بتو منزل گرانست

ز قرآن صحیح نیست یک ذره عیبی
ز من بر من بود آشکاره بی

میا گل میکند چون شعر خوانی
ز بهر آنکه تو بیدار مانی

# زما عرض

## گرانو عزیزانو د خدای جر دلاري سربازو مسلمانانو
## او د قران په مینه مستو شاه زلمیانو
## السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته
## وبعد

زما د ډېرې مودې دا خیال وه چې عزیزانو د ډین ورپالو عاشوقانو ته د قلم په ژبه د زړه دردونه بیان کړم او تاسو سره د مسلمانو دا اوچت بوم افتخار امیزه یادونه او د استعمار چپانو په تنګینو نشو د مسلمانو د زړه خوب غمونه شریک کړم خصوصاً د مخ په نوځوانانو سره د د ښمنانو د کرغېړن او ناپاک اسلام د ښمنه اغراضو په باره کی و ګړیګم دا ځکه چې د دې طبقې د ذهن لوحه صفا وي او د ښمنان هم د همدې طبقې د اغواګرې د پاره په راز راز د سېسولاس پورې کوي او په مختلفو ابلیسانه غولونکو لباسونو کی ځان ښکاره وي کله خود دوستۍ په سپین لباس کی راښکاره شي او د دوستۍ د خوږو خبرو په نشه کی غواړې زما او ستا خوږ روح یعنی خوږ اسلام را څخه پر دې کړي

اوکله بیا په داسې ناځوان مردانه توګه د اسلام په غایښ ماتوونکی اوصولو او فروعاتو باندې خیالی او لفظی حملې کوی چې د اسلام ناخبره ځوانانو ته پاره د شک سبب ګرځی - کله خولا داسې کوې چې د ځینو غافلو مسلمانو نیمګړې اعمال اوکړه وړه په اسلام ور تپې او وائی داسلام خودا کار او نتیجه ده ؟ فلانی نه ګوری؛ او یا هغه داسلام مدعیان وګوره او اسلام پرې قیاس کړه په داسې حال کی چې دبشری الکولی نیمګړې دماغ ځنه راوتلی فلسفی او اصول هم په داسې قیاسونو نه رد سیږی او پوازې لی د پیروانو کړه وکړه نه شو بللی او نه د کاغذ په لیکلی معادلی بی د عمل ځنه د معادلی نتیجه ترلاسه کولای شو د مثال په ډول ؛



خو داهله چې د معدلی مواد د معدلی د اوصولو سره سم د عمل په میدان کی پیاده شی -

ایا پوازې هایډوجن او به بللی شو؟

ایا یو مالیکول هایډروجن به د دو مالیکولو آکسیجن سره او به پلاس راکړې ځوابے سنکارده دې چې کله به هم په عمل کی نیمګړې ا صولو دا صوله نتیجه و نه بدلاې شی خو د داسې پوچو اعتراضاتو ځنه د علم په برکت د خلاصون لاره موندې شو ځکه خو قرانپاک د عقائد علم فرض ګنی او فرمائی (فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ م) معنی دا چې عالم شه پدې باندې (چې بې له ربښتنی معبود ځنه بل د عبادت لایق او

مستحق څه اوځوک نشته) د (فاعلم) صغه دامر صیغه ده او وجوب
فایده کوي نو ځکه خود عقائدو علم فرض دي البته په اجمال سره داسې
فرض ده چې په انتفا سره ئې انتفا د ایمان راځي یعنی دومره خو به
هرو مرو پوهیږي چې خدای ج حق او واحد ذات دي هغه څه
چې د ده ج په نزد حق او ثابت وي هغه واړه حق دي او ماننلي
دي اګر که د دښمنانو د اعتراضاتو کوم چې په اصولو او فروعو دد یني
باندې وارد ېږي د دفع کولو قدرت ونلري او دد ې تفصیلي
علم حاصلول هم لازمي دي او په نه حاصلولو ئې انسان ګناګار دې
ځکه چې بې خبره خو د جومات په ځای کادانی ته ننوزي دختې
او خښتې فرق ورته ګران وي بو مثل دي وائي ناخبره د مرګی
لیوه دي - تو که ده وائي چې یو ناولې په روجه کې په رتیا ورځ
زردالو خواړه بل سړي په تهر ورته وویل ورور روجه ولې خوري
اخر مسلمان خو ئې دي په ځواب کې وائي دا روژه ده که زردالو
نو د دښمنانو د غه رنګه قیاسونه لوازي د اسلام ځنځه دبې خبره —
خلکو دپاره د شک سبب وګرځي او هیڅ ورته پېچوې شی ماهم
ددی دپاره چې د اسلام دښمنو شیطانانو څیرې وپېژنو او ددوی
دناپاکو شیطانی دسیسو ځنځه په امن شو نو د (براهین مؤمن) په نامه
می داکتاب په پښتو او فارسی اشعارو ولیکه او هڅه می او کړه چې
دخو بولیو مسلمانانو د پاره دو دپاره سینکی محرک مضامین پکښی
ځای په ځای کړم

لہ ہلی خوامے دځوانانو د علاقی ور ویشہ ونکی اشعار و رانډی کړه ترڅو کہ ځوان نسل مسلمانانو د پارهٔ د دښمن پہ مقابلہ کی بھترین غوښونکی ښنجروی او زما د پارهٔ د خیر او سعادت مایہ وګرځی امید چی دحق تعالی لہ خوا قبول شی (امین ثم امین) زما ہوازنی ھیلہ بہ د لوستونکی څخہ دخیر د دوعا غوښتنہ وی

الداعی الی الخیر میا ګل صاحبزاده
د داعیونو علماؤ منشی

# زہ دی پیژنم غدارہ چی دښمن ئی



کہ پہ ھر رنګہ لباس کی راڅرګند شی
د دی ھستی کرشمو څخہ شکاره ئی

بنہ دی پیژنم غداره چی دښمن ئی
کہ ھر څو مره د خوګ لت بوه تہوتہ ئی

کہ ھر څو پہ لباس ځان ښاشتہ کړی
زه د پیژنم ابلیسہ زمانہ ئی

کہ ھر څو مره جو ماتونہ ښکلی جوړ کړی
زه دی پیژنم مکاره واښکاره ئی

کہ (هورا) رمبارې پرېږدي کہ پرې نہ بندې
کہ هرڅو پہ الا اِلله باندې اختہ ئې

کہ زرګونہ زيارتونہ اوس اباد کړې
چې پېرون دې قرآن غورځاوہ هغہ ئې

چې ملادې تمدن تہ حنہ بللو
اوس همهغہ تہ جړېږې مزکہ ئې

چې روښانہ نور د خدای دې ګل کولو
پہ پوکې پہ باتہو هغہ بدنيتہ ئې

چې اسلام تہ دې تریاک د جامعې وې
هسې خيال دې بالہ هغہ تورہ شپہ ئې

چې طاغوت دې د میهن وارث ګڼلو
هغہ ئې داوروس دسرشانہ ئې

چې دګلې غوندې بوستان دې کنہ والہ کړ
هغہ سور استعمارتې بل څہ نہ ئې

دالاسونہ دې زما پہ وينو رنګ دې
دافغان پہ وينو هسې رنګينہ ئې

چې ميلون ميلون ځوانان دې سرپہ دار کړہ
هم هغہ د مظلوم وينو تہ جوګہ ئې

بنګلې دې کنډوالې کړې لوټي لوټي
لا هسې د پردو پہ سامانہ ئې

لندو لو کی ماشومان په جړا سره دي
سرولہ پلو ته کافره سره برچه ئی

سره اوروښ اور وریږي په غریبانو
چنګیز په خر دجال ئی بلخ نه ئی

دغه ته ئی سولا روسه اوس پټیږي
سري خوړلی وینی څښونکی ئی اوتری

چی پروڼ دي نه موښ میږند په وینو رنګه
اے اسګوبزه ته هم هغه شرمنده ئی

هم هغه د استعمار ننګ دي راشکاري
هم هغه توره تیاره بده دوره ئی

ته هم ګوره هندوګینه مانه وریت شوي
که هر څو خپله غلام ئی ورسره ئی

استعمار ته نوکري کوي لګیا ئی
که هر څو په ماتو ماتو کی پوره ئی

استعمار دی هڅوي په لوښادرو
ګوره ته مانه معلومه سپیره خره ئی

لکه زما د توري شرنګ دی چی هیرکړي
نن په بهلو بهلو څوکو کی اخته ئی

هندوستان کی دی تورتم جوړه مؤمن ته
جوماتونه دي شهید دی مسخره ئی

د رتہ خلاص به شم زه بیا هغه محمود یم
بت شکن یم بیا به پروت شا په تخته ئې

چې د رغزني شي مشرکه بیا بر جاړې
سومنات کې به په چیغو د لیواله ئې

ده هغه ابدالي احمد شاه زوې یم
لوگیاني ته به ورحم او ته به نه ئې

ببر خوځلي وحشي سکه ته هم پوهه شه
که د رقلم بیا به بیزار له گوجر واره ئې

ای بیهوده لوی نمرودئې زما دشمن ئې
خود دشمن د مصطفی لې زمانه ئې ؟

ما پخوا لا پیژندلې ئې مکاره
که هر څو مې په دوستي دوستي مېله ئې

اسرائیلو فلسطین کې دې څه جور کړه
د مقدس د ې نگیدو پوخ اگاهه ئې

قتل عام دې په اعرابو کې جور کړې
خونړي سیلاب د وینو سرچشمه ئې

مسلمان دې تول په دار راکوږې کړې
زما دوست شوې عجیبه غونډې لوډه ئې

میا گل صاحبزاده داسې سنکاربگې
چې په حق باندې نیشه او مستانه ئې

★★★★★★★★★★★★★★★

# دکتاب دلیکلو وجه

ما په شل ورځوکې دا کتاب تیار کړه
نه شاعر وم نه می مخکې دغه کارکړه

بس ناشدو ناروا وو زه مجبور کړم
چې شاعر شوم رسوا می هرغدار کړه

شاعري می ترپام سخته سخره وه
ځکه ځینی مداریانو دا گفتار کړه

څه چتیات پوراوپرگندی شاعر وه
د دې وخت ځینی اشخاصو بدکار کړه

تنها خال او خت رباب برئی ستاپل
مجازی د مینی خربه ئی سرکار کړه

پخوانی حق شاعران له خلکو هیرشو
چې دانوې رنگ خمار خلکو اختیار کړه

تل لا مینه د رحمن لاره بل دوران شو
تل لا مینه د شیطان ځان سرې کار کړه

شاعري دځيني خلکوتش دارلدي
بدو وهل دې بي دلېله - ځان ئې خوار کړه

او س د اکار بوه جارحه آله بولي
په څو بيتو ئې ځان ګل که بل ئې خار کړه

راشه ماغوندي د حق سنګي پېوه شه
چې م ځان په حق وهلو خوار او زار کړه

د ظاهر په وخت کې ماته وطن او روه
چې په حق باندې مې هر چېرې ګفتار کړه

له آسمانه چې بلا راکوز بېدله
محاذ بر ئې په ما باندې ګزار کړه

مدرسه د حنفي ماته تنور وه
چې مې هلته سپک او ورک هر پوهندار کړه

په جادو په مسجدو کې به لګيا وم
د دې نن خونکار سېلاب نه مې انکار کړه

په لېسه ا بن سينا کې زه وم ګرانه
مسلمانو نه مې لوی طوفان تيار کړه

ملحد بنو ته هر وخت محز کې ولاړ وم
هر هر ځای مې تول وطن ورته انګار کړه

د سېدال په دښمنانو کې پو زه وم
علي آباد په پوهنتون کې مومودار کړه

په گردېز کې چې استاد شوم عبدالحي کې
خُد عجب شبکلی تحریک مې راتیار که
سپماگل او گلاب گل زما یاران وه
مسلمان مې په هر ځای کې راپیدا رکه
دادنن ورځې سرباز زما گل باز وه
چې مې حلقه په گردېز کې داسې یار که
په عالي دارمعلم کې هغه زه وم
چې په هر خلقي کافر مې مکتب زار که
حبيبيه لیسه کې زما تحریک روان وه
هر طالب مې لوی گرگ ډهر غدار که
د روسانو اول تندرچې راکوز شو
سور تنور مې په ځان سمدستي گلزار که
د یارانو سره لارم ځېل خانې ته
ځما یاران وه چې ئې سر په سود دار که
پکتیا کې په رغو کې خرسپېره وم
علماؤ سره ځان مې چې پاسدار که
د هجرت پدې پرېشانه خوار ماحول کې
ځان مې ستړی د دعوت په کاروبار که
درې شلو سره نخبه فضلا تول شول
اتحاد ناري سوري ځان ئې زار که




څه کم دوه کاله موکور په کور زاري کړې
د ملت حق مو په تولو باندې بار که

مګر چا سره ئې و کړه چې و نه شو
خان ئې خپله رقیبانو ته اسپار که

نو به ستر افتخارات ستاسو نصیب وه
رهبرانو خان مو تخم تبانه کار که

دې ملت د اشهامت به ستاسو شان وه
نن پرې وتو غدارانو خان تیار که

چې اتش د اسلام نوم په خوله اخستې
مو د پرستو دار اخستو ځان بیدار که

ظاهر شاه علما ردکړه هسې شی شوه
کندوالو ئې نن زموږ ښکلی ګلزار که

مګر د ملایانو چې امیران دې
سمدلاسه ئې پیدا نوی رفتار که

علما ئې په عزت ووهل په شاه شول
خوار ملت ئې تول خفه په خپل کردار که

زه هم هسې پې غلط شوم هلته لاړم
ځان مې هسې لوی ګرنګ ته ور اسپار که

خو نن بیا د حق په لاره کې داعي یم
ځان مې بیا د حق په مینه کې خمار که

خان ستا یل می مطلب ندي په مضمون کی
دا می هسی په نعمت باندي اظهار که

بس همه دغه می پکار وه دا می غوښتنه
چی می یار ته خان په سپین مخ باندي یار که

دد نیا چوکی مقام می پکار نده
یوسري یم که می خان له د ینه خار که

دچوکی او د مقام والا شه یېر دي
نن ئی گوري هر پیاده خان منصبدار که

چی پرون به په مارشوکی نخا وه
نن ئی دولت په تنظیم کی لوي بادار که

میاګل صاحبزاده تر تولو لوړه
چی ئی خاوري خپل صورت په غم دیار که

* * * * * * * * * * * * *

# توحید

په لغت کي توحید یو بلل د شي دي
چه قبول کړي هغه شي یک وتنها
شریعت کي بیا توحید یګانګي ده
دا قدس ذالجلال بي همتاء

چي یم یو بول په ذات صفات افعالو
کي الله په خوله او زړه صفا صفاء

معنا دا چي خدای پر دریو فقرو کي
لاشریک دي مثل نلري رښتیاء

دالله د ذات پر شان بل څه نشته
نه الله مثل او ماند دي دبل چاء

دالله صفات افعال مشابه نه دي
د مخلوق سره پر هیڅ شاني همتاء

د مخلوق صفات پر شان دالله نه دي
رب له مثله له شو بلکه مُبَرّاء

نه احتیاج دي نه زوال لري هیڅ کله
بي نیازه سباقي ده لره بقاء

هم آخر دی هم اول واجب وجود دی
هم حاضر ناظر په کل واړه اشیاء

قبل الکل او بعد الکل یوازې دی دی
یو مړ دین باندې بر وی تنها بادشاه

ممکنات به همګی واړه فنا شی
وجه ربنا یبقی تر ابدا

وحدة صوری وهی نظام شمس
کلهم به توحید یزدان ګواه

راشی وګورې اتم په ساختمان کی
عجیبه عالی نظام لره دارا

د هستې په شا اوخوا کی مدارونه
الکترون وربا ندې چرې شا وخوا

جاذبه د پروتونو او نیوترونو ده
چی فرار کا بو کوی له هرې خواء

دا تمرکز پاره دا نظم سبب دی
چی ساتلی ئی ده تل خپله بقاء

که ئی نظم شو یچاړ برهم درهم
هغه دم بر شی نابود تباه تباه

ځکه دا مادې جهان واړه ممکن دی
بی علته هستی نه منی اشناء

په هستی متصف کړی ذالجلال دې
استمرار د دې جهان او ابتدا

عجیبه اسرار درب په تماشه کړې
که علمی و شهری کوکب او سماء

مشابه په پوره رنگ ئې قوانین دی
او امر پوره کوې د خپل الله

که له هاې پارابولا پو اعشار وزې
طوفانی پر شی پېرې دد ې دنیا

مګر تل ګورې په امر د خالق ج
منظم فصلونه وې وهاځ او عشار

دا همه واړه پو قدرت پیدا دی
چې علیم دې هم بصیر هم توانا

که (لَوْ كَانَ فِيْهِمَا اٰلِهَةٌ) لوی
دغه نظم پر فاسد وای خا مخا

په رښتیا چې (لَهُ الْمُلْكُ لَهُ الْحَمْدُ) دې
(وَحْدَهُ) دې (لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللهُ)

مپاګل وائې هیڅ نشته بې له خدایه
د ممکن هستی موقوفه په الله

★★★★★★★★★★★★★★★

# نعت شریف

توره شپه وه په عالم کې ظلم خپور وه
هغه چا ژوندکوی شو چې پکښې زور وه

مظلومانو ته حرامه زندگي وه
مقتدر ولره لوی شرمندگي وه

غریبانو خشول ژوندي بچیان
په الله ئې دروزئ نه وو ایمان

مقتدر به وژلې خپلې لو نه
که شي پیغله څوک راکړي پیغورونه

یوه ورځ چې وو امیر المؤمنین
په مجلس کې ناست چار پیر وو صالحین

خلیفه فاروق مسکې شو په خندا شو
ناڅاپي ئې اوښکې راغلې په ژړا شو

رفیقانو ئې د حال وکړه پوښتنه
له امیر المؤمنین نه ګریګنه

نو حضرت عمر احوال کړلو بیان
چې راياد لا شو قصه قبل الایمان

لوړه ورځ ښکاري روان شو خوګسان
له غذانه موجوږ کړي وه بتان

عبادت به موکاوه د دې بتانو
چې شو ورځې لو پوره خوږ رفیقانو

داد جهل تورا له شپه شوله راپاڅه
د مُسکا د خند پدا وجه مې داڅه

دې ساعت کی د جږا وجه مې داوه
چې په وخت د جهالت پیښه له ماوه

لوړه لوري مې مراجعه وه په کور کی
هغه وخت بنه پهلوان وم په زور کی

وسوسه راسره داوه تل مدام
چې به زوم راته پیغورو مېږ وشلم

تر له کوره مې بهر را و ایستله
په هنر مې د ماماکړه بوو له

را پیاد شبوه خپله لور په جهالت کی
راپیاد شوه هغه ورځ پدې ساعت کی

کفر شرک توره تیاره وه غوړېدولی
د حیوان په شان به لې شمځې وژلی

په کعبه کی د بتانو عبادت وه
هر ځا خوا ظلم زیاتی چور او غارت وو

داسی توری ورځی ختمی کړی سبحان
په وجود د پیغمبر آخر زمان !!
خپل رحمت الله پیرزوکړ په عالم
لمر راوخوت جهالت شوتری تم
رب مبعوث که محمد آخر زمان
مصطفی محمود احمد شاه شاهان
راغی شاهد، مبشر او نذیرا
سپینه وړاځ شوه په سراج منیرا
مرحبا ای محمد ی مجتبی
تاریکو لره مصباح کهف الورا
په کمال سره ئی بلغ العلا
په جمال سره ئی کشف الدجا
خصائل ئی واړه احسن الحسنا
صلی الله علیک یا نور الهدا
میا ګل صاحب زاده کړی تمنا
چی په سینه د رسول کی شی فناه

・★・★・★・★・★・★・★・★・★・★・★・

# لا اله الا الله محمد رسول الله

که بصر غواړي بينا - کامیابي غوره اولي
په وېنا شه داشنا ، لا اله الا الله!
لا اله الا الله - لا اله الا الله!!

راشه زده کړه پرواز ي سربازي په سربازي
په وزرو ددي منقا - لا اله الا الله
لا اله الا الله - لا اله الا الله

نا اشنا خای ته بالا شه - نا اشنا سره اشنا شه
په حرمت ددي رنا - لا اله الا الله
لا اله الا الله - لا اله الا الله!

راشه راشه بالیمان شه - هر فرعون لره ګوپان شه
ورته وايه برالا - لا اله الا الله
لا اله الا الله - لا اله الا الله!

وحدانیت د ده دالله هر نمرود سره غزا
هر طاغوت لره وبا - لا اله الا الله
لا اله الا الله - لا اله الا الله

په ظاهر خو مره صفا ده په باطن دو مره ملیاده
مسلمان ده پوري بېنا لا إله الا الله
لا إله الا الله - لا اله الا الله

په ایمان کی غوره ځانګه - په اسلام کی غوره پانګه
لوی شعار ده په رښتیا - لا إله الا الله
لا إله الا الله - لا اله الا الله

لوي سیقل ده دباطن - ده دعرش متوطن
لوي حصار ده دالله - لا إله الا الله
لا إله الا الله - لا إله الا الله

دا په هر عمل اولاده - ځکه دین کی اصل داده
دا رښتیا ده په رښتیا - لا اله الا الله
لا اله الا الله - لا إله الا الله

په جهاد کی دا برېښنا ده - چی دا نوی خوږلرګړه
جهاد ده دَدِین اعلا - لا إله الا الله
لا إله الا الله - لا اله الا الله

دا ښکاره نفیه واثبات ده - دا سوبلت - اثبات اثبات ده
دا د کارو ده پادشاه لا اله الا الله
لا إله الا الله - لا اله الا الله

لطائف پې جاری کیږي - قلب له قلبه صفا کیږي
نور په نور شی معلا لا اله الا الله
لا اله الا الله - لا اله الا الله

کہ ھر څوسرې نښه وي او باطن ئې خوار خسته وي
دا دوا ده دا شفا ئے - لا الـه الا الله
لا الـه الا الله - لا الـه الا الله

دا رجیم ده د شیطان چېښي تښتي ابلیسان ! !
ځان کندن کې ده عصا - لا الـه الا الله
لا الٰـه الا الله - لا الـه الا الله

د آخرې کامیابي ده که دا نوې نوشتې ده
راشه وایه دا یې دا - لا الٰـه الا الله
لا الـه الا الله - لا الٰـه الا الله

که کافر او یا کلن شي او اخر پدې مئېن شي
ورته عفوه ده د ګناه - لا الٰـه الا الله
لا الٰـه الا الله - لا الٰـه الا الله

په همدې باندې اسلام ده په همدې باندې ایمان ده
دا هم دین ده هم دنیا - لا الـه الا الله
لا الـه الا الله - لا الٰـه الا الله

موسیٰ عرض وکه الله ته د دعا غوښتو مولا ته
الله وې ورته بیا بیا لا الٰـه الا الله
لا الٰـه الا الله - لا الـه الا الله

الله وښوده کلیم ته - عالي غوره ورد سلیم ته
وئیلې وایه اې موسیٰ لا الٰـه الا الله
لا الٰـه الا الله - لا الٰـه الله.

که اسمان او ځمکې پوخوا ـ لا الـه وتلی بل خوا
وي به بیا وزمینه خوا ـ لا اِلـه الا الله
لا اِلـه اِلا الله ـ لا اِلـه الا الله

میاګل صاحبزاده ـ وایي ستا په کلیمه
دا دی شان د کاپسِ عقبیٰ ـ لا الـه الا الله
لا الـه الا الله ـ لا اِلـه الا الله ـ



# په خوب کې د مصطفیٰ ﷺ ملاقات

یوه شپه ډېر پرېشانه وم وېده!
عجیبه غوره خوبونه مې لیده

په لوګر کې په سړک عالم قطار وې
مصطفیٰ ﷺ خیرالبشر ته انتظار وې

هرې خواته فعالیت کوي فرښتان
یو سکوت وې په ادب ولاړ انسان

زما زړه له خوشحالۍ غورزي ټخېګې
وارخطا مې له لېمو اوښکې څڅېګې

د وصال خوږې لحظې دي زه ژړېګم
په فراق کې ولې نه مرم پاته کېګم

باید مړ وای په فراق د مصطفیٰ ﷺ کې
یا مې سر وای سینه چاک دشت او صحرا کې

یا ملنګ وای لنګ وهلی د درګاه
اوښکې وینې ژړېدې صبا بېګاه

راشه وا وره عجیب بخت وه خدای راکړی
د محبوب دیدار ته خدایه وم ورسېدلی

غُلغُله شوه شور او زوږ شو په عالم کې
هرچا ولیده محبوب د سترګو نم کې

تہ درود صلوۃ سلام اے مجتبیٰ
ستا حضور تہ عرض کوم نور الھدا ء

پہ سر کی رارِوان خیر البشر وہ
پہ انوارو ئی جھان تہول منور وہ

نازنین بشری و لیدہ پہ سترگو
لا د نفس پہ نوکر ہوند شم پہ غبرگو

د جمال حسن ئے ځہ وکړم بیان
زہ عاجز او قلم دواړہ یو ناتوان

د حضور شاتہ روان څلور کسان وو
څلور واړہ زمونږ ملګری شهیدان وو

بوۂ وہ پاس پہ رسول لوحہ نہولی
تُلہ وَ اللہُ سبکلی سبکلی پی لیکلی

عجیبہ روښانہ لیک وہ ځلیدہ
پہ لیدو بہ ئی لیدو نکی خوښی دہ

بد نفر شی خوانہولی وہ لوحہ
مبارک سبکلی ہاسین پی نوشتہ

چی خواتہ ئی لوحہ وہ عالی غورہ
پری لیکلی تبارک وہ معتبرہ

د ښنګو سبکلی لوحی ترخنګنو وی
بی مثالہ نند اری د دی نسور وو وی

مصطفیٰ وہ پہ چوکاتہ کی ننداره وه
لکه گل پری احاطه هره ننداره وه

خاموشی وه توں ولاړ وه پہ ادب
بې ادبه د رسول دی وی وُطبُ

بې اختیاره لولپه کړم اوږ د مینی
سور انګار جیګر سوخته کړم اور د مینی

په ګرداب د تصور کی ورګذار شوم!
نه زه منصور شوم بر الا په سر د دار شوم

افرین چی په دی هسی درجا تو!
سم نیم نه شوم پدی هسی کراها تو

داد عشق په تربه یاد دی شکرانی ده
داسی نه چی پدی حال ځای دګیلی ده

هغه وخت به می ارمان وای پوره شوای
چه په مینه د جانان وای رسوا شوی

لیونی وای ګرځیدای په دښتو شارو
د جانان په تصور کی په کوکارو

صحرانی وای هسی سر په اُوتو بوُ تو
د بهار نوم می یادولای شه په ژوتو

دغه اور د مینی لا وای تازه شوای
سور انګار په زړه چی کول وای اېری شوای

خوزه خوار واي درسول د درګدا
همېشه واي پدي مېنه مبتلا!
خداونده مياه ګل صاحب زاده
ستا دوست په مېنه سوزي همېشه

★★★★★★★★★★★★★★★




# دجال لئ خوار او زار کـه

عجیبه څوان وګوره ګل د ریحان وګوره
غازی جانان وګوره

په زیکویک باندی ولاړ دی دښمن تښتی له میدانه
قربان له داسی څوانه
دجال لئ خوار او زار کـه

په دښمنی اور لګوی چی غازیان زور لګوی
په کی لیوان سوه زوی
تور یی لو خړ یی جوړ محشر ده له غرمبانه
قربان له داسی څوانه
دجال لئ خوار او زار کـه

په وینو رنګ بختور په قران سوی څګر
عالم پی شو منور!

سر یې پرې کښودو ویاړلې    مظلومان شول پر آماند
قربان له دا سې ځوانه
د جال ئې خوار او زار که

نن په قران غزا ده !!!!!    د خدای د دین اعلا ده
وطن کړ بوه بلا ده
د مینې اور راپارسېدلی پرې توئیږي پتنګانه
قربان له دا سې ځوانه
د جال ئې خوار او زار که

شول افغانان فاتحان    نن شو راویښی مسلمان
نړیوال پاته حیران
توري دي ځار شمه پرکېګي د ښمن مړ شوله غوغانه
قربان له دا سې ځوانه
د جال ئې خوار او زار که

نن پرې زړېدلي شورویان دي    پر شا کېدونکي طاغوتیان دي
چې راویښې شوې مسلمان دي
صاحب زاده باندې اختر ده اوس بروزي بخارانه
قربان له دا سې ځوانه
د جال ئې خوار او زار که

٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭

# د ظاهرشاه په زمانه کې
# د ملحدو پاڼېو غوبل

عجیبه وخت و شته پر شول په وطن کې
عجیبه نښه څوانان وه په میهن کې

د ظاهر د سلطنت په زمانه کې
د پاڼېو تماشه وه په جامه کې

څه کسان د کمونزم غلامان وه
څه کسان بې طرفان څه مسلمان وه

معرکه وه حق باطل جدا کېدلو
توره شپه وه عام الناس نه پوهېدلو

مدارس که پاکولتی که مامورین وه
مکتبیان که استادان که پوه ددین وه

اخ او ب وه هر هر ځای لوېږ مېدو
هر هر ځای د حق باطل مقابله وه

بېره غوښ شعارونه رنګ په رنګ وه
هر رقیب د بل دپاره لوی ګړنګ وه
تنظیمونه وه حزبونه وه لوی کار وه
علنی د ملحد هنو کارو بار وه
پالټی ګانی وی لوی لاس د استعمار وه
هر تنظیم به غوښولی لوی بازار وه
خصوصاً کابل د ټولو مرکزیت وه
هر ورځ به غالمغال وه مزمت وه
هر ورځ به مارش او بیا مظاهری وې
بېرغونه شعارونه وه میلې وې
جزبات وه کفریات وه لی دینی وه
دې کافرو تنظیمو ته پادشاهي وه
خلق پرچم شعله بیا لوی کفری کسان وه
لوی ملي وې دلوی طاغوت پلان وه
خلق پرچم سوسیالستان د روس کسان وه
شعله یان کمونستان د چین پلان وه
دوی نه وروسته مساوات فتنه پالټی وه
مېرندوال د دوی رهبر وه بس غوړلې وه
دې پالټي د یموکراسی دعوه کوله
غربیانو خوا ئې حمایه وه په مخ تله له

دالوازی سپاسی دیموکراسان وه
عقیده کی زماپه خیال چې مسلمان وه

بل ستم غوندې تورتم یونپالتې وَه
ملحدین کمونستان وه خوچپېڼ وه

داپالتی دفارسی ژبې مدعیان وه
دپښتون اوپښتو ژبې دشمنان وه

داخودوئ په خوله دعوه کوله یاره
اصل سخت کافر ملحد دې ریاکاره

ستمیان سمت شمال کې دوطن وه
تول قوت ئې بس پوازې قطغن وه

لیډرشپ دوی طاهر بدخشی وه
بحرالدین باعث ئې شکنته واره سپی وه

نورمحمد ترکی بیا دخلق لیډروه
دوهم کس حفیظ الله کافرسوچ روه

یوئې وه ډاکټر زرغون دخوست دخوا
بیا ترې بیل شو یک زرغون د پکتیا

ترکی وه د غزنی د ناوې کلی
او امین بیاد پغمان وه څخ توکلی

ببرک هلته دپرچم مرتد لیډروه
حسن خیل د کمرلو دکابل وو لا

بل خیبر وه ځناور وه لوی کافر وه
سلیمان لایق لی بل د دجال خر وه
بل افغان ملت یوکوند وه سرخوړلی
نښلسټ افغان دشمن وه بد لېږلی
د هیټلر جهان سوزه پیروان دي
په باطن کې د پردولو نوکران دي
دا هم دوه ولی شوي ځنګی وخت کې وروړه
یو ملت بل ئې افغان ملت شره ګوره
دوهم ځان بولی مسلم په عقیده کې
اقتصاً غواړي پرورئ په جامعه کې
وائی دین د حاکمیت سره څه کار ده
دین خو اصل تشر جومات سره پکار ده
دین کافی نده ټولنې ته نن ورځ
نوي نړۍ اقتصاد وي ورځ په ورځ
بل داوَد ملی خور زنګ جوړکه وطن کې
سره لیوان ئې سره یوځای کړه سیمن کې
ده وی دابه زما دلاس لږ اله وي
وه غافل چې دابه ما ته زَوُال نه وي
څه غټ خیني یې راټول شول ښاماران
اکثراً یې شامل شول بدخلقیان

حسی اورتی خاشتہ بلکہ کی بیریان شو
شازادگان ئی نازولی پہ گریان شو

هپا هوي وه پہ کابل کی پہ اطراف کی
سترغوبل وه جذبات وه پہ دسلاف کی

زرنګارکی بہ جوړ شوي غوائي مندوه
کابل ښ وه بس دسرو وینو ډنډوه

پہ اسلام بہ لګیدل وارڼ کفار
دین مذهب تہ غپیدل واهہ غدار

هرهرچیري بہ ډرامی وي جوړیدلی
د اسلام پہ سپکاوي تیار ښیدلی

پہ لمانځہ پوري ملنډي مسخري وي
پہ دنیات باند ټکالی وی نخري وي

اولیاؤ تہ شکنځلی وي کیدلی
علماوو بہ ډرامی تیار نیدلی

د الله د عظمت ځخہ منکر وه
ابلیسانو تہ طاغوت تہ مسخروه

مکتبو کی دالحاد تدریس روان وه
حکومت کی غټ غټ خلق بی دینان وه

پہ لیلیہ د پوهنتون کی دي کفار و
قران لاندي ځاي تہ واچوه غدارو

پہ لیکن کی درود ووئی پہ اخبار کی
هم توهین د مصطفیٰ وشوه دی لار کی

په نامه (دند زندا مرد) توهین وشوه
سپکا وئی پہ رتبا ورځ کی ددین وشوه

خو بیا هم مسلمانان راببدار نه شوه
که بیدار شوه سوراوشین دچاځان نه شوه

ملحدین مرتدکسان که وه زرگونه
خو بولی مسلمان وه ملیونونه

د غفلت دا نتیجه وئی راشه گوره
کروړوخلق اواره وئی راشه گوره

چی اوس همله خوبه نه پاځیگی ځوانه
دا نوځرنگ خدای سره لی مسلمانه

میاگل صاحبزاده خدای ته زاری کره
چی راوېښ شی مسلمان بیا سرداری کړه

لویه خدایه ته راوېښ کړې مسلمان
میاگل ته وریوره کره دا آرمان

*٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭٭*

# ای غداره نابکاره خلاص به نشی

ای غداره نابکاره خلاص به نشی
ای روسیه ظلم کاره خلاص به نشی
یاد یې لې دی په افغان وس ده
کویلن ته شوی بیماره خلاص به نشی

نن دې هغه فو شانی چې سه نیکاره شوه
په ټانګو نو کې ایساره خلاص به نشی
زور قوت دې همګې داره تمام کړه
داوس شوخ په تینګاره خلاص به نشی

که هر څو سوړ شی اخون قتلان شروع کړې
یا دې فوځ داشی خونخواره خلاص به نشی
دا د صبر تینګار دار و در مل دې
چې رسوا شوې نړۍ خواره خلاص به نشی

نرمی مه بولی په مخ می لاړې توکړې
که په شا شوم له ګذاره خلاص به نشی
خامخا به دې په سنې کې ګونډی بزدمه
زه مومن یم ګوزاره خلاص به نشی

دا تورمخ به دې بر منډ کړمه دنیا ته
تورمخ به شې سره استعماره خلاص به نشی
دې دی ژوند انتقام به دړنه واخلم
نن دې وار داغی خونخواره خلاص به نشی

دغه اوس مستعمرات یدی میراث شی
زه مسلم شومه بیداره خلاص به نشی

چې دې پرېږدم کومیلین کې نو به نه یم
پرېږدې لې کې غدا ره خلاص به نشې

چې پروون پښانه تلونکی وی ملحده
نن به شا نښتې له یاره خلاص به نشې

چې فرعون د زمانې ته کلیم نه تسلیم
بیا مې مه بوله تا مدا ره خلاص به نشې

چې له ما سره په سړو هم د غریب.
اوس بیا مه کوه کوکارې خلاص به نشې

اوس د ملې د جوړ نښت سازونه وائی
چې خزان دی که گلزاره خلاص به نشې

نه میاگل صاحب زاده به ځان قربان کړم
سر به کیږدم په پای لاره خلاص بنشې

# دخلقیانو په ځیل کی دستر کولید لی حال

زه میا ګل صاحب زاده غواړم بیانکړم
دمجبس ستر کو لیدلی حال بیانکړم

زه ۱۸ میاشتی وم بندی خانه کی
دستر کی دامن په ځیل خانه کی

په اول چی ګرفتار کړمه خلقیانو
داختر په ورځو بوتلم غدارانو

خادستانو کړم اېسار په وه تشناب کی
دغه شپه را باندی تېره شوه عذاب کی

په صباح ئی پلسترکړو زما لمو
ما بالکل دشهادت ګمان کاوه

ماوی اوس به دالله خواته ورځمه
دد نیا له ستړو ستو نځو شوم بی غمه

کله ستر ګو ته به راغله مور او پلار
ترینه غوښت به می رخصت په لوړ دار

بیا به لاړم کربلا ظلم او تاراک ته
په افغان کی سرې خوره کسر ښکېلاک ته

په سوچو سرچو ئی راوړمه دفاع ته
یوا طاق کی ئی بندی کړمه یو خوا ته

نو په شپه کی راته راغله جلادان
څلور کسه خون اشامه خادستان

ویرتاړک غوغا شروع شوه په بندیانو
سر تر پښو وینی جاری وی په خوارانو

صبر دی دنړی وهل توکل وو تر سهاره
شو اخون وو تړوله شپه وه ناقراره

شپږ شپی سرو لمبو کی تېر شولو تحقیق
سرنوښت مو په ګرداب کی شو عمیق

وروستو بیا پلی چرخی ته انتقال شو
دلته لا په سختو سختو ګرفتار شو

له اطاقه چه قضا د پاره تللو
ماسلانو هر قدم تعقیبولو

بوله بله نږدی نه شوای دریدلای
د سلام ځواب مو نه شوای ورکولای

مهر و لاک خوله به حاجت د پاره تللو
په تلوار تلوار به بیا راګرځېدلو

ډېر په سخته مو نوبت راتلو بهرته
لاړه دوه شپی هم ونه شوای ډګرته

د غسلو او اودسو* اجازه نه وه
ګرځېدو او لمر کتو اجازه نه وه

تيمامه سره مولموځ ادا کو لو

په هيڅ شانِ مجال نه وه د منځلو

د خالی ځواب کوزی وی د بند پانو

بهر تللو وخت به خالی کړی غريبانو

پوه وه ځ ينځه نفره رابهر شو

مهربان رابانديی حفه دم عسکر شو

د قضا د پاره لاړه با رکوته

په ميدان کښی د لرګيو تشنا بونه

زه له تولو نه پومبی شومه بهر

په اميد د او داسه د غه سهر

خومګری تيرسيده ما اودس وکړو

پدی وخ می پد اشانی هوس اوکړو

ما پشی نه وی منځلی تول راتول شول

عسکريان متوجه زما په لورشول

پلوچ او فحشونی راته ياد کړه ځناورو

هری خوانه نی ويشتلم په ډبرو

ځای په ځای ټی په خپل ځان پوره حيران کړم

په وهلو او شکنځلو ئی ناتوان کړم

افتابه نی راته واخسته عسکرو

نور اطاق ته ئی داخل کړم په ډغرو

په کوټو کې هم فشار او اختناق وو
جاسوسان وظیفه دار په هر اطاق وو
له یوې بسترې بلې ته تلې نه شواې
دوه بندیان نښکاره عیان غږیداې نه شواې
د قضا حاجت ته تګ ډیر مشکلات وو
هر اطاق کې له اتیا نفرو زیات وو
میاں ګل صاحبزاده والی خاونده
ستا په پاک قرآن مې تل لرې پابنده

★ ★ ★ ★ ★ ★ ★ ★ ★ ★ ★ ★

یوه ورځ عجیبه توکه وه یارانو
د ظالمونو یوه قصه د غدارانو
له سهاره تر بېګا کوټه تړلې شوه
د قضا د لاسه تنګ هر یو بندی شوه
یو سپین بږیرې له معدې نه شو پرې شانه
د قضا حاجت د لاسه وو حیرانه
سر تر پایه په خولو کې جپ او چوپ وو
د تکلیف د لاسه سم په ملا کوپ وو
تولو خولې په زارو ستړې کړې عسکر ته
که مریض ته اجازه ورکړې بهر ته
خو مریض په هغه ځائې شو بې حجابه
بې خودې سره لا هوش تو په ګردابه

غمخواره وو دغریبو طبقا تو !
طرفدار وو د بی وزلو ورستیاپاتو
په مجبس کی قومندان وه یو خلقی
عبدالله بلبل کیږده خروړی سپی

بی غیرته بی ایمانه جوړ لیوه وه
بی شرفه بی وجدانه لوی ډاکو وه
هره شپه به قومندان سید عبدالله
اطاقونه په هیبت راغی بېگاه

غوربیک شکنځلی به ئی هرچا ته کولی
ناروا پوچ او پرګندی به ئی ویلی
په لغتو په بکسو به ئی وهل
تول بندیان به ئی هیسی ربړول

په ځنیانو به ئی سروه نا روا!
په بندیانو به ئی وی (هورا هورا)
یوسړی مړ په اطاق کی لیونی شو
له خفګانه له غصی نه صحرائی شو

ځوک ئی نه پرېښود ه خوب ته دی پاګل
خوبولی ئی په هرهرشی ویشتل
ویریدو چی ځوک ئی مړه نه شی له لاسه
شپه او ورځ ئی موضوب نه وو له وسواسه

خو ښېښې ئې د اطاق کړلې مېډ لا
هغه وروسته ئې له مونږ نه که ګوښه
تر هغه ئې ټول بندیان پې زورول
ټول بندیانو ئې پېړۍ کښې آزارول
بختور شخصیتونه وو بندیان
په سلاوو اولیاوو ټول شهیدان
نیمه شپه به مسلح راغله کوټې ته
لکه سره لېوان چې ځان جوړ کړي غوټې ته
کړیږ غبرګ به ئې اوچت کړ ښناورو
په بدګوۍ به نارې کړې ځناورو
وارخطا وحشت زده به ټول بندیان
له ناڅاپه به راپورته ټول خواران
هر سهار به خپل نامه ته انتظار وو
شېرین زړه به ئې ګوګل کې ناقرار وو
هر سهار په انتظار د شهادت وو
د قربۍ په انتظار به هر ساعت وو
لوی لستونه ورسره بندیان به ئې بېل کړه
هر اطاق نه به ئې څه یو کسان غل بېل کړه
شپې له خوا بول بول وو پولیګون ته
قصابې وه خښول وو ځګوخونته

پو طرفته به ځوانان جدا کېدل
قربانۍ ته شهادت ته ځو به تېدل

رفیقانو ته به لې پورته کړل لاسونه
قربان ګاه ته به لې غوښتنه رخصتونه

توره شپه کښې به روان شول مؤمنان
شا او خوا به ترې چاپېر وو سرې لېوان

په غمزو غمزو لې شاته را کتل
اشاره به لې ملګرو ته په ګوته کول

که زما کورته احوال ولېږې ورور ه
اطمینان د شهادت مې ورکړې ګوره

چې له ما نه زړونه صبر کړي خپلوان
ما په مرګ باندې حساب کې عزیزان

هره ورځ به د بندیانو دا مذکورو
یو په بل به لې امانت د غه ضرورو

چې که زه د شپې روان شوم پلې ګون ته
زما کورته اطمینان ورکړه بیوند ته

یا هوازې په ورځ به راغلله رقعه
په مجبس کې به هر خواته ګرځیده

د ملګرو به لې زړه قلم قلم شو
په اطاق کې به لې هرې خوا ماتم شو

نوغشکر به رقعه بېرته واپستله
اقربا وو تسلی کله کوله

څوځو وارے به پای وازرانغی بهر
لا درک به وو تری خپل نورالبصر

میاګله عجیب خوند د کړ یو
د خدای مینه لو یه وه دکګو یو

* * * * * * * * * * * * * * * *

زمونږ اطاق کښی یو ملا وو باعزته
با ایمانه باوقاره با جرئته!

خوقصه دد ی ملامی زورو ی تل
میان ګل صاحب زاده ئی یادوی تل

زما بستر سره نږدی زمارفیق وو
ښه غښتلی مجاهدا و ښه چریک وو

دی په اصل دکنړ وو په وطن کی
وظیفه ئی درلوده قطغن کی

د ه و ی زما یوه سیا سره ماشومان وو
اطرافی یی خولی بی ژبی عاجزان وو

دغه وخته ه غی حمل رانږدی وه
زما طبه ی خولی بی ژبی بی هیلی وه

نه دستیار وو نه غمخوار وو بی له خدایه
ځکه ژاړم چه رایاده شی له ورایه

خپلوان زما په کور باندی خبر وو
لری ملک جلاوطنه مسافر وو

بوناخا په لی زه راوستم خلقیانو
آه افسوس څرنګ به مړه یاست زما بچیانو

په دیار دبی کښی مسافری کی
څنګه مړه به مظلومان وی په خواری کی

ستاسی غږ نه یاد به چا وی اوریدلی
نامحرم به زما په کور وی ګرځیدلی

په دی ورځو چی نفسی نفسی ناری دی
داسمان لمنی بیا په وینو سری دی

هر سړی په خپلو وینو کی خوشبری
هری خوا کی فریاد وند پورته کیږی

هغه وخت به رم ارمان په دنیا نه وی
چی له خپلو بوسړی له ماسره وی

یا می اوس دغه اوازونه اوریدلی!
چی وطن ته بوسړی وای ورغلی

یا می اوس تر غوږ نه شوی آوازونه
چی طبری د خپلوانو سره مړه وای

نه پوهیږم زما ګرانو فرزندانو
وبه وتښتیږی پرسانه فرزندانو

څومره وخت به انتظار وی دروازی ته
خوارکی بابا جوګه شو خپل خانی ته
وارخطا مورکی به څنګ چو بولی
زړه قطری به ئی په څه قرار ولی
په بابا یا به ستا سوسا ختلَهٔ
بوره مور به درنه څنګه تاویدله
تر اخره څوک رانغله له وطنه
چی ددی بی چاره زړه وای پری بی غمه
په اخرکی ئی شهید که جلادانو
خدای خبر دده په کور او ماشومانو
میان ګل والی دا اتول ستوافتخار ده
عاشقی ګوره د سر بابله لوکار ده
★★★★★★★★★★★★★★★★
پوره قصه به خندا وره درته وکړم
پریشان زخمی زړه به دی پری ښه کړم
لو بندی زما شاګرد قصه کوله
د نیولو ئی قصه بیانوله
په تحقیق کی سور په وښو کړم خلقیانو
وپلی وشپیه ملګری خادستانو
مجبوراً می قلم داد کړه لوټا نامه
جان محمد باندی م جوړه کړه بهانه

بس په دروغو مې په ګوته شهر نوکه
کول وجود مې له وهلو څېنې نوکه

شهر نو ئې لټ په لټ وو خادستا نه
جان محمد ئې پېدا نه وو جلادا نو

راغله زه ئې په موټر کې واخستلم
شهر نو ته ئې له خان سره بوتللم

ما ور وشوده له خانه سنګلي کور
پو هلک ئې راووسته څېنې په زور

په وهلو په توکلو ئې شپې مېږې که
څو تر ې چوړ کې جان محمد وار هاشې نه کړه

دې هلک به وې د خداى د پاره ګرانو
نه جاوېد یم جان محمد نه یم خلقیانو

نه مامور یم محصل نه یم ځوانا نو
للهٔ شئ و پو هېږئ د فتر مستنطقانو

خادستانو وې چې دا سخت اخوانى ده
پېښوې خان توره تېګه فرنګى ده

لو بې واچا وه دلبنتو لاندې خوار
وپلې کېږم به جان محمد درنه نیار

وو ایه چې جان محمد ئې اوکه نه ئې
موضبنه هم لیو خلقى ځوانان ته شګه نه ئې

دری څلورشپې ئې نېنه که خاستا نو
تا روانې تېل پانه که سرولېوا نو
په اخر ئې کا وڼل بندي ته یاد که
هغه وې ماله اېږي قلم واکه که
نه دانه پېژنم خدای لوم خلقیانو
مجبوره مې دریږ ګونه که یارانو
د خلقیانوله خولې پوچې را او ختې
شي پېچې پېچې لې راکړلې لغتې
جاوید خان ته لې ووې وروره ینځشي
پوښتي ماتې لغوړ شو په یو ځشي
تاخو جوړکه میا ګله حکایت
ګوندي ورونو ته سبب شي د عبرت

★★★★★★★★★★★★★★★★

د داود دوخت بندیان وه پرکسان
په دوهم بلاک وو زمونږ یاران
په اول منزل کې لاندې واړه دوې وه
ملا محسن په هرشي پوې وو
شپه او ورځ به ئې کول تلاوتونه
له پخوانه دوي سره ووکتا بونه
لېږ آزاد وو ښتا په ګرځېد وکي
به تدریس په کشنا ستو ولاړېد وکي

مگر لوی بندیان سخت له دوی نه بند وو
بیل پلان پروگرام لی بند په بند وو
د امین د اقتدار په زمانه کی
واړه لاړه شهیدان شو حمید خانه کی
ورته راغله غداران چی تا سو بیا یو
آزادی او ارامی تا سو ته شا یو
بستری کالی مو پریږدی د غه ځای کی
تنها تا سو بر یه ځای کړ و په بل ځای کی
بستر و کالو ته نشته ضرورت
مونږ ه تا سو ته سمیال دی سبه عزت
دوی شه پوه وه چی داوه ترمو د سفر ده!
شهادت خدای ته ورتله مونږ ته اختر ده
سره کښنا سته په خپلو کی گلان!
اتفاق سره لی جوړ که دا پلان
پو ر فیق لی قومندان آمر تعین که
د غزا د قربانی نیټه لی زین که
چی که لی تیلی زمونږ ستر گی لاسونه
اتفاق سره حمله ده خپل وس کو نه
په جگړه کی شهادت ستر شرافت دے
مخامخ په جنگ کی مرگ لوی شهادت دے

هم غازیان هم شهیدان به یو سر لوری
د ښه غوره ده چې وم ترې په پرې
شی صفا جامې ئې واغوستې خوانانو
ښه خانونه ئې سمبال کړه رفیقانو
غوړول ئې توري گېړي تور زلفان
په رنجو ئې آراسته کړه خپل چشمان
په مسکا سره ئې غوښته رخصتونه
خدای مېنو ته ؓ وسپلې سلامونه
دوي وې موږ که ایمان تېر که در سره یو
هر سنگر کې به روکا ستاسو میله یو
د الله دَ ملاقات هوس خندا وه
په مَلَکوُ منوره قربان گاه وه
جنتوکې د حورانو تماشه وه
اسمانوکې دَ ملکو ننداره وه
ابراهیم خلیل الله کاته دی خواته
اسماعیل راغے ذبیح دی تماشاته
حسنین خپلو بچوته په خندا وه
انتظار د میلمنو زموږ اقا وه
کربلا ستر امتحان د لته تکرار شو
دَ حسین شاگردان بیا په سر ددار شو

د ماښام سره بهر شو له بلالکه
لړ زېږده په درزه هار وه افلاکه

په مېدان کې ئې ترې جوړ کړه قطارونه
غوښت ئې وتړي د دوي سترګې لاسونه

قومندان ئې د تکبر او از او چت که
شور او زوګ شو بس ترشائې مظلومیت که

مخاطر ئې په د ښمن اوکړه حمله
څوک قربان شو چا تر لاسه کړه وسله

درزه هار او غرمبهار وه په محبس کې
سره اورونه په تار وو په جرس کې

ترنیمګئ شپې تول محبس په درزید اوه
په ماتم پاتې ملګري مبتلا وه

پېنځري ورونه کل واړه مهر اوللک وه
کربلا وه په محبس کې سورتا پاک وه

خبر لاړ شو قوه چارزري داړ ته
زړعادر افغله حېران وغرمبهار ته

د تهانګو په د هشکوئ شهېدان کړه
سل نفره ئې تباه دانشمندان کړه

خون خورود غه ګلشن که تول خزان
شهېدان ئې کړه پوهان دانشمندان

سرمایه دَجامعی دانشمندان وی
ارتقاد ولسونو شاه زلمیان وی

خاخواه به کنه واله افغانستان وی
چی واکمن ئی سره لیوان کمونستان وی

خونفره ئی بلاک ته راستا نه کړه
چی جګړه شوله موږه ئی کوز نه کړه

څلور ورځی په بلاک کی صالحین وو
انتظار دَ شهادت ورونه شیرین وو

دوئ هم خپلو کی داوکه مصلحت
چی به مونږ هم بایه وکاندو غیرت

پنځه زره افغانی د ی محور و
یو چاقو پنهان په دا کړله عسکرو

شه عالم د شر میاتو محصل وو
سید اکبر شهید پدوی کی بهادر وو

چاقو واخست سید اکبر له رفیقانو
ځان ئی جوړ مجاهدی ته که یارانو

عبدالله حیث ئی راغی دوئ ته بیا
غوښت ئی یو یو مرگ ته بوزی کاهو یډا

سید اکبر تکبیر گویان حمله پی وکړه
عبدالله بهر ته کښته منډه اوکړه

سید اکبر شاه شاهان وو ور پسی
قومندان باد سگردان وکړی صوری

عمومی وره ته نږدی لی را ایسار که
قومندان خبیث لی سوری سوری خوار او زار کړ

وه اته خاپه لی وواهه چا قو!
نو پده لاندی له دلانه رسیږو

سید اکبر دوست د اکبر وکړه غزا
لوی طاغوت لی رانسکور که برالا

منتقم وو د بی وزلو د جړا
شو فرعون د زمانی لره موسی

دوست د خدای لوړ تو هلته ژرغږ شو روان
د عسکرو لی توپک واخست عیان

چی ماشینګی پیدا کړه را بهر شو
په خلقیانو عسکریانو حمله ور شو!

دوه دری ساعته لی شدیده جګړه وکړه
په رښتیا لی د خلقیانو چاره وکړه

ډیر مردار شو ملحدین پاخه خلقیان
په امان شو مظلومان بی نوایان

شهادت جام لی څښی جانکه سید اکبر
ځکه ځی لاړه جنت ته برابر

په زرګونو بنتي ئې استقبال ته
شوی راکوز په روح ئې ورسېد کمال ته

په هر حال شپاړس نفره شهیدان شول
پخوانی د خدای دوستان واړه تمام شول

خود دوی د قربانۍ په نتیجه کی
ازاد دی شوه ارامی شوخېل خانه کی

همیشه د روازی وازی د کوټو وی
خوشحالی د ګرځېدو او د غسلو وی

په ما بس کی نوی راغی تومندان
تلونزون اخبار ئې راوړلو عیان

په بند پانو نوی راغله زندګی
جمعي لمونځ شو په اختیار شوه بندګی

میاں ګل صاحبزاده قصه بیان کړه
تاریخچه ئې د ظلمونو نمایان کړه

★·★·★·★·★·★·★·★·★·★·★·★·★·★·

# د داود خان کړو وړو ته لنډه کتنه

داود خان غوښته په مرسته د اوروس
اقتدار راوړي پلاس دغه تپوس
عسکري امور ئې کم کړه له شرکانو
مشاور ئې راوستل له اوروسانو
تمامي زانئې انشاکړ (K.G.B) ستل
منصب دار ئې په تعلیم لاړ شوروي ته
کمونست پالټي ئې راوسته وطن ته
د فساد نبسټ ئې کیښوده میهن ته
مکتبو کې ئې لا دین تحریک شروع کړه
هلکان ئې منحرف بې عقیده کړه.
څو پدې شکل ظاهر له تخته گوزار کړي
پادشاهي ځانته پیدا پدې رموز کړي
هم ئې یاد په تاریخو کې شخصیت شي -
افتخار ئې د قوم په لوړ همت شي
کړي سرکوب هغه چې ده ته دردسر وي
که مسلم دې که هندو وي که کافر وي
په آخر کې بیا په خپلو همزمانو
خیسته واچوي پدې کمونستانو
ځان په داک او اقتدار کې یک تنها کړي
د جمال عبدالناصر مشي روا کړي
سلطنت د جمهوریت په نامه جوړ کړي
آزادي د بیان تل خفه نسکور کړي

هم بانی د دیموکراسی نظام مشهور شی
هم بانی د ترقی و ورد قبول شی

هم په اصل کی تولواک دی په وطن کی
هم نصیب تو له نافه کری په ختن کی

په همدی مشی کامیاب شو په ظاهر
په نصیب ئی شو کل واره مظاهر

په کومک داور وسی ئی کړه نسکوره
پادشاهی په ظاهر شاه د تړانګ په زوره

کودتا ئی خپل د تره زوی باندی وکړه
تار په تار ئی پادشاهی د خپل تربره کړه

داور وس په خوا کابزه کمونستان
نهالان وو د داوُد د باغستان

د مثال چه د ول کو مرچی دی جریان کی
شو هلاک په دغه شیه په دی پلان کی

مشهور کمونستی حبیب الله وو
د زرمت ولسوالی د کوزی خوا وو

کابینه کی د داوُد چی وزیران وو
یکایک باخه مشهور منحرفان وو

فیض محمد، قادر، داتول کمونستان وو
اکثر ئی بیا والیان ولسوالان وو

داود خان وکړه شروع د تکولو
چی په څوک په کوم مطلب د بیژندلو

مسلمان قوت چی چیری منظم وو
په سرکوب ئی حکومت په هڅه دم وو

مسلمان ځوانان ئې مړه کړل په وهلو
څه ئې تېښتي ته مجبور کړل په شړلو

په وهلو کې شهيد حبيب الرحمن شو
ده پېښاني په سلګونو شهيدان شو

مکتبونه کالجونه شول تړي پاته
کورو اوړاو ژندګي په ژوند ميرانه

څه کسان ئې پاکستان ته مهاجر شول
څه کسان ئې محبسو نوکې راګير شول

عام ملت څخه بيا پټ دا حقيقت وو.
د داود پښتوانه په صداقت وو

دې ځوانانو مجبوراً وکړ و قيام
مګر پاته ځای په ځای شولو ناکام

په لغمان او په پنجشير ئې حمله وکړه
ځای په ځای ئې د قيام لغر مجبوره کړه

حقيقت دا وو شول پاته پلانونکي
ډير کسان شول د داود په ځيل خالونکي

دامين خون آشام چې اقتدار شو.
ډير ځوانان دانشمندان په سر دار شو

عسکري صاحب منصب کلان سالان
جنرالان ډګروالان او تورنان

مسلمان وو خو عاشق په ظاهر شاه وو
وفادار د ځيل بابا په هره خواه وو

داود خان له دوئ نه هم سترګه کيدله
عسکري قوه ئې هم وربړ ځله

جنرالان ئې څه بندیان خانه نشین کړه
څو ظابط ئې منصب دار بالا نشین کړه
عسکري ته ئې شامل دوا زده پاسان کړه
مقتدر ئې څه فوجي کمو نستان کړه

په موهم پوستو کې راغله ګډ بید ینه .
شول پیا دوري تحریکات د دوي لادینه

منصبدار مسلمانان هم لا شعور وو
سیاست نه بې بهري هسې مغرور وو

داسې سور سیلاب روان په وطن وو
دوي بې غمه هر سړی په ځان مین وو

ده ملي دفاع برعکس په حقیقت کړې
جوړ توې تند ر د اسمان شو په ملت کې

مقابل کې به د هر بد لون خاموش وو
هر بد لون کې به بیا دوی ځانه بدوش وو

هرا کا فو ته به و لاړ لاس په سلام وو .
تسلیم شوې به هر وقت په هر میدان وو

خو چې کله کمو نست د رژیم قائم شو
هر خوا په مسلمانو باندې غم شو

عسکري مسلمانان خوب نه بیدار شول
په زرګونو شهیدان په سر دوار شول

زیات ئې اوس هم په ملحد رژیم کې پاتې
مجاهد له لا سه هر چرې خوري ماتې

مساوات چې د و مایل د غرب په خوا
د دا دي د لا سه شول تباه تباه

میوند وال ئې قبل یا نه که په مجلس کې
ډیر کسان ئې زولانه کړه په هوس کې

ډیر یا خو سرمایه دارئ تار په تار کړه
ډیر ځواکونه ئې خراب او تار و مار کړه

په ګمان ئې لوړ له هر ای خوا امان شو.
په قدرت کې یک تنها یاتې په ځان شو

لوړ وګرځید په خپلو ړنیقانو
په تخریب د خلقه کیا لوی پرچمیانو

اسلامي ملکو ته لاړه په سفر
مدینې منورې ته شو حاضر

په طواف د بیت الله شو بهره ور
خطې مشی ئې بیا کړه تجدید نظر

له سفره دوباره وطن ته راغی
لوی ټکر ورسره میهن ته راغی

اوردسان شول بې باوره په داود
هک پک پاته وو حیران مات او مبهوت

ډیر مغرور وو پدې کار کې داود خان
چه زه هیڅ نشي کوي درس بچیان

حال ده داسي کوم ماحول د داود خان ؤو
پیدا ای شوې پکښې ډیر کمونستان وو

داود خان امتحاناً وکړو اقدام
میر اکبر خیبر ئې راوست په دام

میر اکبر خیبر چې د پرچم مشر رهبر وو
ترور شوې پټ پنهان لوی ځناور وو

هر ځای په واویلا خلق او پرچم شو
د داود په دښمنۍ کې هغه دم شو

حکومت کړه اجتماع منع اعلان
خو حجت کاندې تر لاسه داود خان

مگر دوی په میر اکبر سره راټول شول
خلق پرچم ئې په مرداره سره جوړ شول

په صباؤ داود کړل گرفتار
مشران ئې هم واړه په شمار

ترکي ببرک حفیظ ئې په قرغه کې
کېښنول واړه په ځانته جیل خانه کې

او ورسان شول وارخطا دستور ئې ورکړ
جیل بچیان ئې کودتا ته برابر کړه.

په اوم د ثور شوه کودېتا
هري خوا نه په داود جوړه غوغا

عسکري فرقو کې هر چیرې کامیاب شول
ټانک او توپ واړه د دوی تحت حساب شول

خصوصاً قوهٔ هوائي زړې دار
د خلقیانو په لاس ورغله سهار

ارگ په هوائي ډاروان دغه قوت کړه.
وزیران ئې گرفتار ټول په غفلت کړه

د داود دارگ د ننه پټ خلقیان وو
پټ پنهان د شوروي یانو پلویان وو

ارگ له لورې ټینگار وشو لوبه کلکه
شوروشیان ئې تار او مار کړل لو هک پکه

په حیله قادر ترلاسه کړه احکام
داوت خان پدی سبب شو ناکام

هوائی قوت ترلاسه کړو قادر
سور تنور شو په بمو کوهنادر

ارتباط له هری خوا په داوت بند شو
تری تم چیره خواره د دی کمند شو

سری لمبی وی په داوت جوړ و محشر
هری خوائی ماشومان په منډ و سر

څوک په وینو کی لاهو شو او پریادکړی
نشته څوک په دغه ورځ چی خواران یادکړی

لار د تیښتی نشته کومی خوا ته لار شی
غلامان نشته چی نن د دوی پکار شی

تریخ حلقونه وارختا تندی اخستی
مور دخپل جګر ګوشه وحینی تښتی

د دنیا دغه وفا دغه بقا ده
زره ترل پدی غداره نار واده

راشه بن لدی قصی واخله عبرت
داووپای دجاه جلال او د قدرت

پیغلی لور د داوت خان وی بابا جانه
تسلیم شه لوی او واړه شو پریشانه

داوت خان په یوه ضربه سوری سوری کړه
په تینګاد کی ئی حساب وروستی سلګی کړه

اخر و واړه خلقیانو دلکشا کړے
دافغان ملت لاهو شو په بلاکی

حکومت ړاوړه پلاس دغو غدارو
خلق پرچم سړي خواره مرتد خونخوارو

میاګل صاحبزاده بس ده بیکنه
لږ ارام راحت په ځان کړه بیږه وینه

